


## ددې ګڼې مضامين







په لومړی او دوهمه
منظره کې دمنزلباغ
پخوانی عمارات
ليدل کيږی



د کندهار د
شاه بازار پخوانی
منظره

# ځلاند شفق

هغه چې تل زما د وجود په ځلانده شفق کې اوسیږي. هغه چې د سهار په رڼا کې هیڅکله خپل نقاب نه پورته کوي، یا زما خدایه! زه هم هغه د خپلې وروستۍ نغمې په غیږ کې ستا حضور ته د وروستۍ هدیې په توګه وړاندې کوم،.

الفاظو غوښتل چې هغه تر خپل اغیزې لاندې کړي او وئیې غولوي خو ناکامه سول، ترغیب خپله د آرزو ګوته غیږ هغه ته پرانستلې وه خو بې فایدې.

ما هغه د خپل زړه په حرم کې ساتلې؛ په ملګو نو مې وګرځاوه او د هغه په شاو خوا کې زما د ژوندون عروج او زوال، کوز او پاس ځرګند وو.

زما په تخیلاتو، زما پر وینه او زما پر خوب ئې حکومت وکې خو بیا هم یوازې او جلا اوسي.

ډېرو خلګو زما دروازه راوټکوله او هغه ئې له ما وغوښت خو بیرته مایوسه ولاړل.

په دنیا کې هیڅ داسې نه ده پېښه سوې چې هغه دې مخامخ یا غلې سوې وي او هغه تل په خپله تنهائۍ کې ستا و توجه ته انتظار لري.

کندهار

د ۱۳۴۷ لمریز کال د جوزا میاشت

# په ټولنه کی

## د موزیم اهمیت

ځرنګه چې د موزیم وجود په یوه ټولنه کی د هغی ټولنی د تېر سوی زمانی دواقعاتو، عنعناتو روایاتو، د حیاتی او اجتماعی مراحلو معرفی ده نو ددغه اصل له مخی که سړی د علمی تحقیقاتو په رڼا کی دماضی ادوارو د هنر ومختلف شکلوته ژور نظر واچوی نوحتمی ودې نتیجې ته رسیږی چې دغه ملك د لرغونی تمدن د کاروان په چوکاټ کی تر کومی اندازې پوری مخ په وړاندی تللی دی او هم کوم رواج چې د موجوده نسل په اوسنی ژوند کی پاته دی خودبخوده ئې د هغه اصلی بڼه او د تاریخ په دوران کی و هغه ته د زمانی حد اټکلولای شی اوپر ماضی ادوارو باندی ښه ترا رڼا اچولای شی ځنګه چې هر ملت د خپل تاریخ په سیر کی د یو لړ نامـلایماتو سره مخامـخ سویدی او هغه ددې موجب ګرزېدلی دی، چې د هغه ملت پر مذهب، هنر، ادب صنعت اجتماعی وضع عرف اوعاداتو ستره اغیزه واچوی اوهغه دځان تابع ګرځوی.

نو ځکه دلته دتېر شوو زمانو کړه وړه ټوله وهغه وُلس ته پـه مختلفو شکلو میراث پاتېږی چې ځینی ئې دصنعت په وسیله او بعضی د هنر او ادب له لاری او ځینی نورئې په اجتماعی توګه د عرف او عاداتو له پلوه چې ددې هر یوه ساتل پخپل ځان کی د مشخصاتو له مخی بېل، بېل طـرزونه لری خو د لرغونو آثارو د ساتنی لپاره د پېړیو، پېړیو راهیسی مختلـفو هیوادو یو په بل پسی موزیمونه تاسیس کړېدی.

ځرنګه چې ګران هیواد افغانستان داقلیمی شرایطو او سوق الجیشی نقطه نظره اوهم دجغرافیائی موقعیت په لحاظ د پېړیو، پېړیو په دوران کی ځو ځلی د خپل عصر د تمدن و نهائی مرحلی ته رسېدلی دی چې اوس دخارجی متخصصینو دعلمی تحقیقاتو له مخی چې د هیواد په مختلفو سیمو کی کیندنی اوحفریات سویدی په زړه پوری نتایج لاس ته راغلی دی.

همدارنګه د کندهار برخی چې هم دزاړه تاریخ په لړ لو سره د پېړیو، پېړیو په دوران کی ځو ځلی د خپل عصر د تمدن و آخری پړاو ته رسېدلی دی اود منځنی ختیځ دلوی مرکز په حیث ئې خپل موقف ساتلی دی. په اوس وخت کی چې دهیواد د لرغونی تاریخ دزیات روښانه کولو اود پخوانی بارزشو آثارو د بیاژوندی کولو په غرض پلټنی او تحقیقات روان دی، موږ پخپل وار د لرغونو آثارو او تاریخی آبداتو د ساتنی د لوی مدیریت څخه چې په هیواد کی د لرغونو آثارو د پیدا کېدلو او ساتنی دامکاناتو متضمن دی هیله کوو چې په کندهار کی د تحقیق او پلټنی وړ ځایونه چې تر اوسه پوری ئې لاس نه دی خوړلی دځپلوژورو تحقیقاتو لمن پلنه کړی او همدا رنګه د کندهار دموزیم لرغونی آثار چې اوس د ځای د نشته والی له کبله په نا مناسب ځای کی تیت اوپراګنده دیاده وتلو په حال کی پراته دی او ودانګړی تعمیر ته اشد ضرورت لری د تعمـیر د احداث په برخه کی ئې د مربوطه مقاماتو خاصه توجه راګرځول غواړو.

لیکونکی : م، «عطائی»

# د کندهار د هنری مکتبونو لنډه معرفی

که په ډېر جرئت دا ووایم چې کندهار هر وخت د ښکلو هنرونو پالونکی هنرمندان درلودلی دی نوزه مې کاملا یو‌ړه دی چې هېڅوك به ئې نفی ونه کړی.

البته پدې کې به نو زه هم تسلیم یم چې دا هنرمندان په کوچنی سویه په هنر کې د ښه شخصیت خاوندان شویدی، او نورئې نو لکه د ټېدیا ګلان د باغوان لاس ندی لیدلی اود خزان په څاپېره رژېدلی دی.

دا مبالغه زه نه کوم چې دلته ګوا کې د هنر یوه طلایی دوره تېره شوېده خو په محلی سویه هغه څه چې پرون په هنری ساحه کې موجود وه تر ډېره ځایه غنیمت وه او نن باید په خواشینی ووایو چې د هنر په ساحه کې په مطلق فقر اخته یو او پرون حال مو تر نن ښه ؤ.

داچې ولی دغه د بی هنری په بی کیفر اخته یو عوامل ئې البته معلوم دی خو ددې لپاره چې زه د کندهار موجود ځوانانو ته ددې وطن د هنر یو لنډ تصویر په الفاظو وکاږم.

د کندهار د هنری معرفی لپاره ئې بده نه بولم او ضمناً که زموږ او سنی باذوقه ځوانان د هغو لار تعقیب کړی دا به یو ښه کار وی ځکه دغه هنر دی چې د ولسونو په کلتور کې ښې اغیزې کوی خو شرط ئې دادی چې هنر به له تخیل څخه واقعیتونو ته راباسی.

دادی د کندهار پر ښکلو هنرونو یو نظر اچوم:

اول : [خطاطی]

د خطاطی هنر په کندهار کې له پخوا څخه موجود ؤ چې ډېر قدیم ئې نه بولم بلکې د ولسمی پېړی په اواخرو کې د میرعطامحمدشاه خطاطی په افغانستان کې مشهور ره‌ده.

ددغه مکتب په پیروی کندهاری صوفی عبدالحمید[۱۲۶۵-۱۳۴۱ش] راپورته شو، چې ۷ ډوله خط ئې لیکه او حتی په دوا‌ړو لاسو ئې خط داسې لیکه چې تر ننه پوری په هیواد او د باندی کې د هغه شهرت ډېر پراخ دی.

نننی معروف خطاط ښاغلی عزیزالدین وکیلی چې په «هفت قلم» شهرت لری، هم ددغه مکتب پیرو دی اوددوه آثار نن په هیواد کې معلوم او ښکاره دی په معاصرو خطاطانو کې موږ میرزا غلام‌علی چې په ولایت کې کارکوی او حاجی عبدالرحمن یو پلزی پېژنو.

دوهم : [ رسامی ]

د رسامۍ په هنر کې به خلک ډېر وی خو زه تر مخنیو خلکو د ملا عبدالرحمن هنر د زیاتی ستاینی وړ بولم، ځکه رسامی دلته بیخی تازه رواج شوی ده او داچې ملاعبدالرحمن غوندی متقی سړی هغه باللهنو دقدر حق لری.

ملاعبدالرحمن یو سپین ږیری سړی ؤ چې شطرنج ئې خورا خوښ ؤ اود ژوندتر اخیره په یوه حجره کې مجرد اوسېدی. دحجرې د دروازې پر سر ئې په غټو تورو لیکلی وه چې: لږ به خورم هوسا به اوسم.

دې سړی د کندهار ډېری

نور د بشتی به دریم مخ کی

د محمدګل [نوری] ژباړه

# کندهار

په دې وخت کی د موریا دولت مخ پر کمزوری تللی او د بلې خوا هم انتی او کس راو ګرزېدی نو ځکه د یو تید-

موس تر اداری لاندی د باختر د دولت د پاره د ترقی او پر مختګ زمینه برابره سوله ځو عمر نه ؤ تېر شوی چې

یو تیدوس د باختر باچا د هندوکش پر جنوبی علاقه د کابل د باچا سوفاګز ینوس تر اداری لاندی وه حمله وکړه.

او هغه ئې تر ګوتو کړله او بیرته د باختر په دولت پوری وتړله، تر یو تید موس وروسته دده زوی د متریوس پاچا سو

او د هندیوه لویه برخه ئې فتح کړل او سیالکوټ ئې د باختری او د یونان د دولت د هندی متصرفاتو مرکز وټاکه.

بیا ابوکراتیدس د «متریوس په غیاب په هند کی» استفاده وکړه په باختر کی ئې د باچهی اعلان وکړ

تر ده وروسته دده زوی هلیوکلس سلطنت ته ورسېدی او د

اسکائیانو د ظهور په اثر د باختر د دولت نفوذ د هندوکش

د شمال د هندوکش وجنوب ته نقل شو.

د(۱۵۰-۱۵۵ق م) کال په حدودو کی اسکائیان د امو تر

رود تیر شول د باختر یونانی دولت ئې د پښو واچاوه د باختر یونانی باچاو کابل ته راغی او د هندکوه په طبیعی پناهګاهو کی آرام-و

اسکائیان د هرات خواته ولاړل ځکه چې په لویدیځ کی د پارت قوی دولت ؤ نو ځکه سیستان او کندهار ته راغلل، او د پخوانی او

قدیمی اسکائیانو سره میشت شول ددې (۵۸-۱۳۲ق م) کلو په مابین کی دوهم مهرداد د اسکائیانو پارتی مغلوبه کړل، پر سیستان

او کندهار ئې استیلا وکړه مګر دوهم مهرداد تر مرګ وروسته سیستان او کندهار آزاد شول اسکائیان د هند په فتوحاتو بخت

شول، او پهلواهانو په کندهار او سیستان کی سلطنت تاسیس کړ د پهلوانانو هغه خورا ستر باچا وونونیس یعنی د سترو باچهانو

باچا په لقب یادسو، د وونونیس ضرابخانه کندهار ؤ او دده د باچهی شروع عموماً په (۶۰ق م) کال کی قیاسوی، تر وونونیس

وروسته سپالیریس باچا سو، او غالباً په همدغه وخت کی پهلو-اهانو د کابل سلطنت فتح کوی او

د کابل یونانی خانوادی منقرضه کوی.

ګندوفارنیس چې په ۱۹ میلادی کال د پهلوانانو د

سلطنت پر تخت کښېنوست ددې سلسلې د مهمو باچهانو ځخه ؤ، او پر کابل ئې هم تسلط درلود، دغه نوموړی

پخوا هم د دوهم آزس په زمانه کی د کندهار نائب الحکومه ؤ

هر کله چې ګندوفارینس پاچا شو (ګاس) د نوموړی

ورار په سیستان او کندهار کی نائب شو په دې مهال کی د کوشانی ستر دولت تاسیس کیږی او کجوله کدفیزس

یا اول کدفیزس په باختر کی د خپل دولت تر انتظام وروسته و کابل ته راغی هغه ئې تر ګوتو کی، او بیا ئې د

کندهار پر خوا لښکر کوچ کړ، ټوله ئې په خپل قلمرو کی راووست، کندهار د دې کوشانیانو د دوری تر پایه

لکه د آریانا نور ولایات په امنیت او معنوی پرمختګ کی ژوند کاوه، په زیاته بیا

دستر کنشکا دوره د آریانا د دولت د اعتلا نوې دوره ده چې د هغه له فیضه دې ولایت ته هم بر خه رسیدلې مگر دلو یو

کوشانیانو تر سقوط وروسته مخصوصاً د پنځم کنشکا (هویشکا) تر مرګ وروسته د کندهار ولایات د دوخوا

څخه تر تهدید لاندې شوه، یو د شمال له خوا د هیاطله ؤ بل د لویدیځ له خوا د ساسانیاد ځوان دولت د ظهور له

خوا ۰

د (واسودوا) د ۲۲۰م کال په شاؤ خوا کې تر مرګ وروسته د کوشانیانو عظمت

او برم له منځه ولاړ، ویل کیږی چې د ساسانی دوهم بهرام د (۲۷۷-۲۹۴) میلادی یا د مسیحی دریم قرن په

وروستیو وختو کې سیستان فتح کې، او د کابل د باچا سره په شخړه بوخت سو او د هلمند او ارغنداو سیمو ته راغلی

مگر دا نوشیروان په وخت کې چې د هیاطله هجوم زیات او د ساساني دولت اقتدار هم زیات و خپل معراج

ته رسیدلی او په مقابل کې د کیداری دولت او کابلشاهان بیخې کمزوری او ضعیف کیږی، نو رخج او زابلستان

هم لکه باختر او تخارستان د ساسانی حوزې په کړه کې ور ګډیږی ځکه چې انوشیروان په (۵۶۳م) کال د بیزانس له دولت سره پنځوس

کالنی سوله وکړه، او د موقع څخه استفاده کړی د هیاطله سره و جنګ ته تیاری کوی، او د خپل برمننګ د اطمینان د پاره د مخه د ترکانو

سره د دوی پر ضد یو او متحد کیږی د دې جنګ کیفیت په لاس کې نه شته، لیکن د هیاطله باچا له منځه ورکیږی، په نتیجه کې د جیحون

رود سر حد تا کل کیږی، او ساسانی باچا باختر، تخارستان او رخج لاس ته وروړلی، اما د افغانستان په ځینو ولایاتو کې د هغه عکس-

العمل لیدل کیږی، په دې معنی چې کابل، زابل او بلوچستان او د پښورا و سوات حوزه د محلی آمرانو تر امر لاندې مستقل کیږی

چې هغه غوره ئې د کابل رتبیلان دی چې کندهار هم د دوی په لاس کې ؤ ۰

د اسلام د مقدس دین ظهور او

شاؤ خوا د دغه مقدس دین خپرېدل په حقیقه مځکه کې د عربو د بریو او فتوحاتو باعث وګرزېدی د عربو مسلمانانو د ساساني دولت تر

انقراض او د فارس تر فتح وروسته و ننی خراسان یا افغانستان ته هم لښکری راولیږلی، سیستان د هجرت په (۳۴) کال او کندهار ئې په

۴۴ هجری سنه کې فتح کړل کندهار د مسلمانانو په مقابل کې ډېر مقاومت وکې، مسیو فریه چې د (۱۹) قرن د

سیاحانو د جملې څخه دی د هر بیلو نظر په چې د اخوان-الملك (۱) د جملو په اساس دی داسې نقل کوی:

د اخوان الملك جملې دغه دی: - په ۳۰۴ هجری کال کې (۹۱۶) د مقتدر د خلافت په وخت کې په کندهار کې د یوه

برج د تهداب او بنسټ د کندلو په حال کې یوه ژوره زېر-زمینی پیدا سوله چې په هغه کې د عربو یو زر سرونه تو له

په یوه ځنځیر تړلی، او د (۷۰) هجری کال (۶۸۹) تر دغه وخته پوری سالم پاته وه ځکه چې یو کاغذ چې د غه نیته په هغه

کې لیکلی وه په یوه د وریښمو په رشمه تړلی او د غه رشمه د نه ویشتو کسو ترغو پورې خټلی او په هغه کاغذ کې د دوی

نومونه لیکلی وه (۱) ۰

---

(۱) بنایی چې اخوان-الصفاوی- دا یوه سلسله مجلې دی چې د هجرت په څلرم قرن کې نشر کېدلې ۰

---

(۱) ص ۳۴۳ فریه سیاحتنامه

---

(۲) ص ۸۸ دریم جلد

ددې پورته بیان څخه څرګندیږي چې عربانو د امیري سر په راتګ کې پردې ښار باندې ئې په اساني سره قبضه نسواې کولای د تحفة الکرام خاوند عیناً کټ مټ دغه واقعه په لږ اختلاف سره چې ښایي همدغه اصلاً واقعه وی دا رنګه لیکي: (۲)

په درې سوه او څلورم سنه کې د کندهار د برجانو څخه یو برج ونړېدی او دغه نړېدلي برج له منځه څخه د سرو زرو نه څرګند سو له دغه نړوله سرو نه یو د بله سره نړلي وه او د نه ویشتو سرو په غوړو پوړی په تار رقعي نړلي او د هر یوه نوم پر دغه رقعه لیکلي ؤ، او دغه لاندي نومونه د هغو اسامیانو څخه دي: سریح بن سنان - حسان بن یزید، خلیل بن موسی او پر دغه رقعو دغه تاریخ لیکلي ؤ سبعین هجري یعني د هجرت اویایم کال.

دعربو د مسلمانانو د سختو یرغلو او حملو او نړ کوښښو سره سره کندهار او زابلستان د عربو تر کلي نفوذ لاندي رانه غلی، یوازې د تبیلانو د کابل او کندهار باچهانو باج ورکاوه وبس.

دي وضع د غسې دوام درلود څو چې په (۲۵۲ه) (۸۶۵م) کال صفاري یعقوب لیث په سیستان کې په اقتدار راغلی پنجوایي او تګین آباد ئې تسخیر کړل او د کابل رتبیل شاه ئې وواژه او رخذئې ونیو، او هم دغه رنګه ئې غزني او کابل هم لاس ته راوستل.

دصفاري دولت تر سقوط وروسته کندهار دسامانیانو تر نفوذ لاندي راغی، مګر د هجري په څلرم قرن کې غزنویانو سلطان هغه لاس ته راووست، کندهار د سلطان محمود غزنوی او د غزنوي د نورو سترو سلطانانو په سایه کې یې په امنیت او آرامي ژوند کاوه، تر څو چې دغزني د دولت اقتدار مخ پر ځوړ او انحطاط شو، او دغور د کوهستانو له منځه څخه په زیاته بیا د هغه د مرکز د فیروزکوه څخه سلطان حسین علاؤ الدین جهانسوز سر راپورته کی او غزني ئې دفنا په باد باد کی، او له هغه ځایه څخه د افغانستان د هغه وخت و هغه لوی ښار بست ته راغی د هغه دوړی وایستې خراب ئې کی (۵۴۵) هجري (۱۱۵۰م).

غوري دولت لکه چې هم هغسې په تیزي جهانګیره سو بیر ته د بر مه ولوېدی، په دی وخت کې دارا- کوزیا په ولایت کې ودان او د تجارت ستر مرکز همدغه بست ؤ

دبست نړېدل ددې سبب شو چې کندهار آباد او ودان شي ځکه چې کندهار تر بست وروسته په رونق میندلی وو نو ځکه د داراکوزیې پایتخت تر دغه وروسته و کندهار ته را انتقل سو، د غوریانو د کمزورۍ په ترڅ کښې چې کندهار باندې دسلجوقیانو لاس بر سو، د سلطان سنجر سلجوقي تر زماني پوري د دوی تر نفوذ لاندي ؤ، دغه نوموړی په پای کې د غز د ترکمانانو له خوا خلع سو تر څو چې سلطان علاؤ الدین غوري هغه ته نجات ورکړ.

تر دغه وروسته کندهار دغوریانو په لاس کې پاته شو د هجري په (۵۹۷) (۱۲۱۰م) کال سلطان محمد خوارزم- شاه د هغه مالک شو اما په ۶۰۹ هجري (۱۲۲۲م) کال چنګیز خان د خوارزمشاه پر مملکت یرغل او حمله وکړه او بیخی یې د هغه سته او دوړې وایستې

وروسته تر دې چې چنګیزي سوځونکي تاثیرات له منځه څخه ولاړه د کرتیانو سلسله روی کار شول او کرت دوم ملک شمس الدین د هجرت په ۶۷۶ کال کندهار محاصره

(۲) سیاحتنامه ص۸۸ دریم جلد چې سهواً په ۴۹ مخ راغلی

محاصره کی، کندهار د کرت د پاچهانو په حوزه کی داغی د کرت د سلابی د آخری باچا په زمانه کی یعنی ملك غیاث الدین پیرعلی تیمور د هرات فتح کی او د کرت آل خاتمه ومونده او بیا یې په (۷۹۱هـ) (۱۳۸۹م) کال کندهار ونیو او خپل لمسی پیر محمد ته یې تسلیم کی.

دعیسوی پنځلسم قرن په اواخرو کی کندهار د هرات د سلطنت په جمله کی شامل ؤ، دغه لمړی وار ؤ چی د کندهار نوم: ضرابخانی په حیث د سلطان حسین بایقرا په مسکو-کاتو کی څرګند سو، د سلطان حسین په وخت کی سردار ارغون ذوالنون بیګ د زمینداور او نورو منطقو حکمرانی ئی لاس ته راوسته او کندهار خپل پلازمینې وګرزاوه، دده اقتدار په کندهار کی زخته زیات شو د سلطان حسین د دوری په آخر کی مرز که شیبانی موقع غنیمت وګڼله پر بلخ ئی یرغل وروړ، په کندهار کی د ذوالنون بیګ زوی چی شاه بیګ ارغون نومیدی حکمرانی کوله، پدغه ترڅ کی چی شیبانی هرات د

سلطان حسین بایقرا د اولادی څخه لاسته راوست او په زدو خورد او جګړه اخته ؤ، بابر چی په کابل کی ئی اقتدار درلود پر کندهار ئی یرغل راوړ او شاه بیګ ئی د کندهار څخه وشاړه او کندهار ئی واخیست (۹۱۳هـ)، (۱۵۰۷م) اما شاه بیګ د شیبانی تر راتګ وروسته ژر بیار و نیو او څو کاله ئي په مستقل ډول ژوند کاوه، په دې وخت کی دافغانستان عمومی اوضاع ډیر بحرانی څرګندیدل او د مهمو پیښو سره مخامخ ؤ، څکه چی د یوی خوا د هرات ستر دولت مخ پر ځوړ او زوال رهی ؤ، او شیبانیان راغله بلخ، هرات او کندهار ئي لاس ته راوست د بلی خوا صفویان مخ پر عروج او ترقی وه د دی سیمو او اطرافو ته ئي سترګی نیولی او په کابل کی د بابرشاه لوی اقتدار په لاس کی ؤ، د جهانګیری په چرت کی ؤ شاه بیګ ارغون موقع غنیمت وګڼله په کندهار کی ئي په مستقل ډول او آرامی سره ژوند کاوه تر څو چی په (۹۲۸هـ) (۱۵۲۲م) کال بیا کندهار ترګوتو کی، په دې مهال بابری حکمت او دولت او دولت په هندوستان کی هم ټینګ ؤ، مګر د کندهار حال ډیر خراب، دغه دواړه نوی دولتونه د مځکو د پراخی او نیولو په سودا کی وه، پر دی سیمه سره په جګړه

اوښتړو کی وه او کندهار ددې دوو دولتو د ښخړې ډګر وګرزیدی، څکه صفویانو کندهار ته لښکر راوا-ستاوه، او (۹۴۱هـ)، (۱۵۳۵م) کال سام میرزا چی د صفوی شاهزادګانو یو یاغی شهزاده ؤ هغه ئي لاس ته راوست او خپل روابط ئي د فارس د مرکز سره قطع کړل، لیکن طهماسب شاه هغه بیرته ونیو او له خپلی خوا ئي یو حکمران چی بوداغ خان قاجار نومیدی مقرر کی، چی دغه نوموړی یو کال وروسته د بابرشاه د زوی شاهزاده کامران له خوا برطرفه شو، څکه چی کامران د خپل ورور همایون تر ماتی وروسته د شیرشاه سوری او د هند د مشهور فاتح خواجه کلان بیګ مغل د لاسه کابل ته راغی او له هغه ځایه کندهار ته راستون شو کندهار ئي د صفویانو د لاسه څخه خلاص کی په هغه مهال کی چی د هند مغلی پاچا همایون د هند څخه د کندهار خوا ته راوښړل شو کندهار د کامران میرزا پلاس کی ؤ همایون د صفوی باچا څخه د کومك د غوښتلو په ترڅ کی وعده وکړه

چې کندهار په صفویانو ته تارنوك کوی، مګر په خپله وعده ئې وفا ونه کړه او صفویانو د هغه د پهلاس راوړلو چرت وواهه مګر ناکامه شول د هند د مغلی اکبر پاچا په وخت کې طهماسب

شاه کندهار لاس ته راوړ او اکبر هغه تر ۱۰۰۳ هـ (۱۵۹۴م) کال پورې نسوای تر ګوتو کولای تر دې وروسته تر (۱۰۳۱ هـ) (۱۶۳۱م) چې د جهان ګیر عصر دی کندهار د هندوستان د مغلو تر قلمرو لاندې ؤ لیکن همدا غه کال فارسیانو بیرته کندهار ونیو

او شاهجهان بیرته په (۱۰۴۷ هـ) یعنی ۱۶۳۷م کال کندهار ونیو او په پای کی په آخره ‌ډلاشاه- عباس صفوی په (۱۰۵۸ هـ) (۱۶۴۸م) کال پر کندهار

داسې قبضه وکړه چې د هند مغلو بیا نه شوای خلاصولای لکه یو وار اورنګ زیب مغلی امپرا- طور پنځو زرو لښکرو پر هغه حمله وکړه ناکامه شو او په ۱۶۵۴م کـال د اورنګ زیب

کوښښ بیا د ناکامۍ سره مخامخ شو څو تر ۱۷۰۹ کال پورې د صفویانو په لاس کې پاته سو څو چې د غلجیو ستر غښ سردار حاجي میرویس خان هوتك د کندهار بلکه د ټول ه افغانستان د خلا- صون په تلاش کې سو او کامیاب هم سو او زوی ئې

محمود فارس دولت د افغانستان ضمیمه کړ او صفوی سلسلې ته ئې بالکل خاتمه ورکړل د فارس دولت د نادرشاه د دولت تر ظهور پورې د افغانی دولت ضمیمه ؤ.

په (۱۱۴۹ هـ)، (۱۷۳۷م) نادر افشار د اصفهان څخه پر کندهار لښکر راوړ ماوه او کندهار ئې محاصره کړ، په پای کی تر دو کالو محاصرې

وروسته ئې ونیو، په دې ترڅ کې ئې د کندهار د باندې په شهر سرخ کې یو معسکری کلاجوړه کړه چې نوم ئې نادرآباد پر کښېښود له همدې امله ځینې په خطا او اشتباه کې لوېدلی دی چې

دغه نو موړی د کندهار بانی بولی.

نادر افشار په ۱۷۴۹ کال کی ووژل شو، او د را نولوی او ستر پاچا اعلیحضرت احمد شاه بابا ته د سلطنت وار ور ورسید!!!

اعلیحضرت احمد شاه بابا هغه شلېدلی تناو بیرته سره پیوند کی او نوی افغانی او پښتنی حکومت ئې منځ ته راوېوست، همدغه نوموړی

غازی اعلیحضرت احمد شاه بابا د خپل حکومت تر محکمه کولو وروسته د ښار مرکز تبدیل کړ او پر دغه ځای چې همدا اوس د کندهار ښار دی خپل مرکز وګرزاوه.

د کندهار د اوسنی ښار د بنسټ او ودانۍ بیان د سراج التواریخ څخه د تاریخ سلطانی او نورو په استناد له لږ اختصار سره نقل کوم، د سراج التواریخ مؤلف د ۱۱۷۴ کال د احمد شاه بابا

د محاربو او بیرته راګرزیدو پېښې ته او مغلی شاه علم د تاج بخشی تر بیان وروسته داسې لیکی:

د اجلال تر نزول وروسته چې اعلیحضرت احمد شاه د دې کار په فکر کی ؤ، چې د نادرآباد هوا په دې سبب چې د رګو او چمن ته نژدې دی

صحت ته تاوان لری باید خراب شی، بل ښه ځای چې ښه آب ؤ هوا ئې وی پخپل نامه یو ښار ودان کی، نو ځکه لمړی ئې یو پسورور او ژور ه وا له د ارغنداو د رود په لو یدیځ ساحل کی وکښله

د د ښب خواته ئې راکش کړه چې ښار ودان کړی څرنګه الکوزی د دغو ځمکو څښتنان وه نو ځه ئې وکړه، نو ځکه د خپل قصد څخه وګرزېدی فعلاً ئې دا کار پرېښود، څو عمر باد ئې باعفته محترمه

مور مړه سوله او هلته ئې ښخه کړه، نو دغه زیارت د ده د مور د روضې په نامه و بلل شو، بیا ئې نیت وکی چې د مرت کلا د لو یدیځی خواته نوی ښار واچوی نو بار ګز و منع کی، څرنګه چې اعلیحضرت

احمدشاه بابا حلیم پاچا ؤ، نو ځکه ئې دغو دوارو ښېروته هیڅ ونه ویل: په پای کې فوفلزو مېړانه وکړه خپلې ملکې ئې ورکړې چې ښار پرودان کې، نو ځکه نوموړی باچا دوی ملکې قبولې

کړې په دغه ځای کې چې همدا اوس اوسنی ښار موجود دی دولس غولبې ملکه چې قریباً ۶۰۰ جریبه کیږي د ښار تر نخښې لاندې راوستله د ښار خښته او بنسټ ئې کښېښود او په ۱۱۷۴ کال ئې په

کار پیل وکی د درانو د ټولو ټکمو د همت او کمک

دوعدو سره سم ئې داسې امر وکی چې سم دوروړ ګلو ګه د ویش په قرار هر ټکم او ټبر خپله محله او کوڅه په خپل نامه جوړه کې عیناً د ښار په منځ

کې د څلور ولار و د تقاطع نقطه وه یوه لویه ګنبده جوړه کړه تر کلا او برجو او د خندق تر کیندلو وروسته ئې ټوله علماء، مشایخ، سیدان، پیران فقیران، یتیمان، خواران، بې وزلي ئې په عام

ډول مېلمانه کړل، ډېر ډېر ئې تر خوړلو او اغامو تروېشلو وروسته ئې د ښار دودانۍ د پای ته رسیدو دعاوې ئې وکړلې او د احمدشاه ښار ئې نوم پر کښېښود.

اما عوامو په نامه د کندهار و باله د فرق د پاره ئې احمدشاهي کندهار و باله د کندهار ښار چې د اعلیحضرت احمدشاه پایتخت ؤ دده مرحوم تر وفات وروسته د ولایت د مرکز په نامه شو ځکه

چې د احمدشاه بابا زوی اعلیحضرت تیمورشاه د خپل دولت مرکز کابل وټاکه پایتخت ئې ور نقل کړ، اما په اوس زمانه کې چې د مملکت د آبادیو او ودانیو مخ پر ترقي او پراخې دی په دې نیت

، چې د حفظ الصحې مراعات وشي د احمدشاهي

ښار: باندې د ښار لمن اوږده شوې ده، نو نن ورځ د کندهار ښار د افغانستان تر ټولو ښار و ښایسته او پراخ اوستر ښار دی.

«مأخذ»

تاریخ سلطانی
سراج التواریخ
حدود العالم

بلاذری
تاریخ سیستان
د ایران تاریخي جغرافیه
د آریانا د ښار و تاریخي او جغرافیایي تذکره (صدقي)

اسکندر او آریانا (صدقي)
د افغانستان تاریخ (نلسن)
آریانا انتیکوا (ولسن)

نګاهي بتاریخ قدیم افغانستان (یعقوب حسن خان)
زین الاخبار ګردیز

سیاحتنامه فریه (ترجمه انګلیسي)
اسائیکلوپیډیای بریتانیکا
» » » اسلام

ارامي خلافت شرقي (لوسترنج)
رهنمای افغانستان (محمدعلي)
تحفة الکرام

ځینې د کابل سالنامې
د حاجي محمدګل «نوري»
ترجمه د کابل کالنۍ د (۱۳۲۱) کال



# تطبیقي، تاریخ

ښاغلی «نومیالی»

په هر تعریف چې (تاریخ) راواخستل شي خو دا خبره په کښې ځائیږي چې ودو اقسامو ته ئې سړی وویشي.

یو (بیانـي تاریخ) بل - (تطبیقي تاریخ).

بیاني تاریخ البته هغه چې ټول واقعات ئې یوازې د بیان په احاطه کې ژوندوي او حوادث ئې صرف د لیکلو په غېږ کې خوندي وي.

ترکمي اندازې چې د حقیقت او خطا پوښتنه پـه (بیاني تاریخ) اړه لري نو په جواب کې ئې ویل کېداى شي

چې لېکنه خو لمړی د واقعاتو او حوادثو نه پوره بېلـ نه ځخه ترډېره حده عاجزه ده.

بله دا چې هـر تاریخ لیکونکی پخپلو حیاتي او اجتماعي مرحلو کې بېل بېل احساسات او ډېر لږ لیکونکي به وي چې په تاریخي مسائلو

کې واقعات په حقیقي شکل معرفي کړای شي ځکه ارو مرو به یا له یوې تاریخي واقعې ځخه نفرت لري یا به له یوې

تاریخي حادثې سره محبت لري او په دې اړو صورتو کې

ئې خپل شخصي احساسات په هره مرحله کې چې وي په ارادي، یا غیر ارادي ډول ځنې بکښې داخلیږي.

مهمه خو لا دا ده چې بیاني تاریخونه اکثره د ټولو مقتدرو طبقاتو تر نفوذ لاندې د دوی د سیاسي خوښې او له دې جمه ځخه

نور کوټه عوامل هم سته چې د داسې ټولو دلائلو په رڼا کې دا پوښتنه سړی ته ځان ډېر غټوي چې آیا بیاني تاریخ به ترکمې اندازې حقیقت لـري.

په دې سلسله کې دا خبره د اهمیت وړ ده چې د بیاني تاریخ حقیقت او خطـا نسبت حـادثـې واقعیت په خپله د تاریخ لوستو- نکي له باور سره ډېره اړه لري

ځکه څوک خوش باوره وي او غواړي چې ترده د مخه تاریخي جریانات صرف د کتابو له تورو

ځخه تحصیل کړي نو ښائي چې په تاریخ کې خپل خوش مضامین ثابت حقایق وګڼي او د مرګ تر ساعته په خوشحاله واوسي خو که بیا څوک داسې نه وي نو ممکنه ده چې فیصله به ئې همداسې نه وي.

پر دې اساس نو بیاني تاریخ یو نکل دی او د رشتیاو د رواغ حکم هم د یو نکل په اندازه قبلولای شي.

تطبیقي تاریخ هغه دی چې هرچا ته له موجـوده جریانه ځخه معلومیږي هر ولس چې په هر ملک کې وکتل

شي نو د هغه د ژوند له ثقافتي اجتماعي، ادبي او فلسفي جریاناتو ځخه چې هلته د ستې په د ستي شروع وي د انتیجه

راوتلای شي چې د دې ولس د خلکو تر منځه ځنګه خلګ له ځنګه واقعاتو سره تېر سوي دي ځکه د هر چا موجوده وضعیت چې ولیدل شي نو خود

بخود د هغو د تاریخ حقیقي وضعیت معرفي کولای سي او په دې سړی پوهوي چې

دا د پېړیو، پېړیو جریان دی چې اوس په دغه موجوده شکل د دغو خلکو په ژوند کې تطبیق سوی دی.

په تطبیقي تاریخ کې هیڅ د خطا ځای او نه ئې څوک د غلطي او صحت په مینځ کې مشتبه کېږي ځکه، د ژوند

جاري جریان له خپله کوره ځخه نیولي بیا تر بهره ځایه پورې چې سړی وغواړي په مثبت ډول ئې مطالعه کولای

شي او دغه مطالعه نو د تاریخ

تېر جریان او تللي واقعات

په ښه ترتیب سره روښانه کولای سي ولي چي هرجاري ژوند د خپل تاریخ واقعي نتیجه بلل کیږي او د اجتماعیاتو په باب کي داڅېره ښه خبره ویل سوېده چي نن د پرون نتیجه ده او د سبا مقدمه ګڼل کیږي.

که د تېرو حوادثو په باب کي صرف د بیاني تاریخ پر بیانو اکتفا وکړو نو ویلای شو چي په ساده ډول مو اکتفا کړېده او په داسي ډول کي خو نود نړۍ هرولس تر بل ځان کم نه بولي او که څېري د کمبود احساس وکړي نو دستي په دستي ئې د ښو کتابو په لیکلو او د کوچنیو ډولو په غزولو سره تلافي کوي او په دې ترتیب نو د نړیوالو پراته ملت تریوه پر مترقي ولس خپل ځان لوړ ایسولای سي.

لیکن که د تاریخ ملاحظه له حاضرو جریاناتو څخه پسي وروا خلو نو د نیا او د دنیا حوادث لکه څنګه چي راغلي دي په خپلو ذاتي اشکالو کي تحلیلولای شو.

پدغه منظور به زموږ یو لوی اشتباه پوال اکثره ویله:

زما تر تاریخ حاضر جریان ډېر خوښ دی ځکه په حاضرو واقعاتو کي، چي ارومرو د خپل تاریخ واقعي نتایج دي، عالمو، جاهلو، قوي او ضعیف، مدني او بدوي ناقص او کامل، او نور ټول څه ډېر ښه سره معلوم دي.

ژباړونکی «ح»

# د لویانو وینا وي

## د کړو نتیجه:

نه یوازي ته په هوا کي، نه ددې باب په تل کي، نه د غرو په ننس کي او نه د عالم د اجزاو څخه په یوه جز کي داسي ځای سته چي انسان دي په هغه ځای کي د خپلو کړو له نتیجو څخه خپل ځان پوان خلاص کړي. (بودا)

## ښه کړه:

ستاسي د فضیلتو هره ثمره لکه ستوري داسي دي چي ور کیږي خو رڼا ئې اوس لا هم په خپل نجومي لارکي حرکت کوي او لار وهي د غه ډول ستاسي د ښو کړو رڼا به لا روهي حال دا چي ستاسي کړه او عمل ډېر وخت کیږي چي سرته رسیدلی دی نو هر څو مره چي ستاسي ښه کړه ډېر او ورکه شي رڼا به ئې تل تر لسه ځلیدونکي وي. (نیچه)

## خطرناکي کلمې:

بیخي بدې او خو اخطرناکي کلمې دادي (ټول) د غه ډول دي. (تولستوی)

## ښه خوی:

هغه څوک چي ښه خوی لري هیڅکله یوازي نه پاته کیږي ځکه تل ځان ته دوستان او ملګري پیدا کوي. (کنفوسیوس)

## اخلاق:

اخلاق د علم، مال، مقام ښکلا او نورو مزایاو ځای نیولای شي خو هیڅ نعمت د اخلاقو پر ځای نشي دریدلای. (....)

## ضعیف موجود:

که انسان خپل ځان تر هغه مقام چي په ده کي دی لوړ نه کړای شي نو ضعیف موجود دی. (انیل)

## ښه اخلاق:

اخلاق د نړۍ د لویو محرکه قواو څخه دي او د خپلو تظاهراتو په کمال کي انساني طبیعت په خپل ډېر لوړ او عالي شکل مجسم کوي. (اسمایلز)

ښاغلی محمد اسمعیل «زاهل»

# آیا ژوندلرونکي ځل څیری او ځمکه پیدا شو ؟؟؟

د اسلام مقدس دین تقریباً ۱۳۴۶ کاله پخوا تر نن ورځي پر ځمکه باندې د ژوندیو ځل د پاره ژوند د پیدا ښت موضوع ته اشاره کړې او پخپل معظم او معجز کتاب (قرآن مجید) کي ئي د یوه کامل فارمول په ډول داسې فرمایلي دي:

یعنې څښتن تعالی و ټولو شیانو ته له اوبو څخه ژوندون ورکړی دی یا په بل عبارت ګویا مبداء او اساس د ټولو شیانو د ژوند اوبه دي .

که د غه قرآني فارمول په ښه غور او دقت د نورو علماؤ د نظریاتو او عقائدو او علمي دلایلو سره د مطلب او غایې له مخې و کتل شي دا به څرګنده شي چي ژوند د لومړي ځل په هکله د اسلام پاکه او سپېڅلې عقیده او د ټولو علماؤ دلائل او نظریې ډېر نژدې او یو بل سره لري او په عمومي ډول یوه غایه او مقصد ځني څرګندېږي .

د مخه تر دې چي د دې موضوع د اثبات د پاره د ځینو علماؤ د عقیدو او نظریاتو په ښکاره کولو پیل وکړم بده به نه وي چي د تورات د لومړي باب لاندې مطلب چي د (آفرینش انسان) په کتاب کي لیکل شوی او په دې موضوع پوري ښه پوره اړه لري و ګرانو لوستونکو ته تقدیم کړم او وروسته نو بیا څه ناڅه د هغو علماؤ او پوهانو عقایدو او نظریې و لیکم کوم چي په دې لار کي ئي ډېر زحمتونه ګاللي دي او خپل راتلونکي نسل ته ئې خپل د توان او قدرت سره سم معنوي خدمتونه کړي دي .

د تورات د لومړي باب لاندې مطلب په لاندې ډول دی:

«څښتن تعالی ځمکه او آسمانونه پیدا کړه ځمکه چي د دریا بونه او سیندونه د توري او تودې او ریځې په شکل په هوا کې ولاړه وه او د لمر رڼا ئی او پلوشې ئې تر هغو نشوای رارسېدلای او د ځمکې و مخ ته نه رارسېدلې نو ځکه پر ځمکه تیاره وه وروسته تر هغه

د څښتن تعالی په مخصوصه اراده او غوښتنه د غه توره او توده او ریځ په ټوټو ټوټو تقسیم او په عین زمان کي ئې په سر پدو هم پیل وکړ او دا او بو په شکل و ځمکې ته راکښته او سیندونه ځني جوړ شوه یعني «ځمکه، او به، هوا» درې واړه پیدا شول .

د غه رنګه څښتن تعالی و غوښتل چي نباتات پیدا سي میوه او تخم وکړي څو د هغو حشراتو خزندګانو او حیوانانو (ځاروي) غذا او د ژوند سبب شي کوم چي د ده په اراده او غوښتنه په راتلونکي وخت کي د ځمکې پر مخ پیدا کېږي .

هغه وچي لومړی حشرات «کرمها» بیا خزندګان او وروسته مرغان او نور حیوانات

داوبو له منځه د مځکې مخ ته راووتل او په ژوند ئې پيل وکړ تر دغو ټولو وروسته بيا څښتن تعالی وغوښتل چې انسان خپل غوښتلو او مرزا سره سم په خورا ښه توګه پيدا او د مځکې د مخ وا کدار «حاکم» ئې مقرر کړی.

د تورات د لومړي باب د دغه بيان څخه هم ښه ترا معلوميږي چې د لومړني ژوند سبب او واسطه او به دي.

دا هم بايد وويل شي چې د تورات د دغه پورتني مطلب د جيالوجي د علم سره ډېر نژدې والی لري او حتی د نوموړي علم د تصديق او تائيد وسيله او شاهد بلل کېدلای شي.

اوس نو د نورو علماؤ په عقايدو او نظرياتو باندې په لنډه توګه پيل کوو:

۱- هاکل - دی برسېره پردې چې د «ډاروين» د نظرياتو يو پيرو د «مولبر» افکار ئې هم تعقيب او تر څېړنې لاندې ونيول او په دې لار کې ئې ډېر ربړونه او زحمتونه وګنل څو په (۱۸۶۶ ع) کال کې ئې يو لوی کتاب د (جنين شناسی عمومی) په نامه نشر کړه، ده په خپل دې کتاب

کې د ژوند مرتبې د ماهيانو (سيلورين) له دورې څخه شروع او تر ذوحياتينو، کيسه لرونکو او تی لرونکو حيواناتو او بيزوګانو پورې ئې را اورساوه او وروسته ئې بيا د انسانانو د اوسني نسل پر دوره ختم کړی دی.

نوموړی عالم لومړی په دې عقيده ؤ او ويل به ئې چې امکان لري (حرارت «اکس» او تشعشع «وای» او ځينې مواد لکه کربونيک او د آزوت د ګازاتو) سره د يوځای کېدلو په واسطه يو ځانګکی «پروتو- پلازم» د کوم سيند په ژورو ځايو کې پيدا او د ژوند د پيدا ښت سبب شوی دی.

هغه ؤ چې ده خپل د دې عقيدې پېروی له کبله وروسته تر ډېر زيار او زحمت د اوقيانوس په يوه ژوره حصه کې يوه «شقافه عصاره» کشف او د هغې نوم ئې «باتيبوس هاکلي» کښېښود او په ډېره خوښۍ او لوړه غاړه ئې خپله دا نظريه او عقيده ښکاره کړه چې «څرنګه دغه کشف شوې ماده يعنې د تيبيوس هاکلي د يوه سلول په شکل واوښته چې په حقيقت کې دغه سلول هم يو حد فاصل دی په مابين کې د نباتي او حيواني ژوند.

نوموړي عالم دا هم علاوه کړه چې دغه يو سلولي حيوان د يوه مساعد محيط په واسطه سره يوځای شوي او د خپلې ټولنې او اتحاد په

نتيجه کې د نباتي او حيواني ژوند سبب شوی دی.

مګر له بده مرغه وروسته تر څه مدې ده خپله دا عقيده پخپله ترديد کړه او وئې ويل چې د باتيبوس ماده د لمړي ژوند وسيله نده بلکه ژوند لومړی ځل د يوې ډېرې عادي مادې څخه پيدا سوی دی چې «سولفات د وشو» نوميږي.

۲- ادمونډ پرېه - دی عقيده لري او وائي: چې ژوند لمړی ځل د سيندو په ژورو ځايو کې نه دی پيدا سوی بلکې د لويو سيندو پر څنډو ښکاره شوی دی ځکه چې اوس هم نسبت و هر ځای ته د سيندو پر څنډو ژوند ډېر او خورا ښه دی.

وروسته تر ادمونډ پرېه د څه مدې د پاره په دې باره کې چا کومه قطعي نظريه او ټينګه عقيده نه ښکاره کوله

او پوهان فقط په دغه فکر او مفکوره کې ډوب شوي وه چې آيا څرنګه د (کاربن هيدروژن، آزوت او اکسيجن) په سوو او زرو ټوټو نه سره يوځای شوي او د ژوندي مادې يو ماليکول ئې جوړ کړی دی!

څو هغه ؤ چې په ۱۹۴۴ ع کال کې (الکساندر ويلد

او- امیل دګن) دنو موړی موادو یو ځای کیدل رښتیا و بلل او وئی ویل چی «د کاربن- هیدروجن- آزوت- اکسیژن او ځینو نورو موادو په زرو اټوموته دلمر د ماورای بنفش دپلوشی تر تاثیر او اغیزی لاندی په تصادفی ډول- ره یو ځای شوې او یو ژوندی مالکیول جوړ شوی دی.

۳- مونت لیو او ریختر چی دفرانسی او المان پیاوړی پوهانوه دالکساندر او امیل دګن داعقیده دروغ و بلله او وئی ویل چی مثبت علم هیڅکله خودبه خود پیدا ایښت او تصادفی ژوندنشی قبلولای بلکه امکان لری چی دمځکی مخ دې دغو بنو د او بو شکل ځانته نیولی وی «یعنی په ټولو معناو دژوند کولو د پاره یو مساعد محیط شوې وې» او ځینو مکروبونو دی په دغه مساعد محیط کښی عمل او فعالیت کړی وې چی دهغو له تاثیر او اغیزی څخه دی، ژوند پیدا شوی دی.

خو سره ددغه هم دوی پخپله دغه عقیده او نظریه کښې شك در لود او کله به ئی دا پوښتنه له ځانو څخه کوله چی: «ښه که دمځکی مخ دژوند د کښت ساحه و بواو نو دژوند تخم له کومه پیدا او څرنګه دلته راغلی دی؟».

څو هغه وچه وروسته تر دوی ځینی نورو پوهانو چی (آرینوس او بکرل) نومیدل دمونت لیو او ریختر نظریه ئی رښتنی وبلل او دژوند د تخم د پاره ئی خپله عقیده داسی ښکاره کړه: «دژوند تخم عبارت له هغو باکتریا نو څخه دی چی دنورو کرو څخه راوتلی څه موده په فضا کښی سرګردانه او لا لهانده ګرځیدل تر څو چی دغه مساعد محیط ته رارسیدلی او دژوند د پیدا ایښت سبب شوی دی».

هو! دنوموړو ددی عقیدی او نظر ئی دتردید او بطلان د پاره هم ډیر دلایل شته چی یو له هغو څخه دادی چی باید و ویل شی دغه وړوکی او ذره بینی حیوانات چی دڅه مودی د پاره په فضا کی سرګردانه او لا لهانده ګرځیدل څرنګه کیدلای شي چی دلمر د تودواو سوزنکو وړانګو څخه دی ځانو نه وساتی مړه او تلف دی نه سی..

د پورته بحث او څیړنی څخه دا ښه تر ا ښکاره کیږی چی هم د ژوندلومړي ځل د پیدا ایښت په هکله دعلماو او پوهانو ډول ډول عقیدی او نظریی چی کله کله دیوه او بل دقول او وینا تصدیق او تائید کوی او کله بیا دیوه او بل وینا تردید او غلطوی خو سره ددغه هم په عمومی ډول دا نتیجه تر ې اخستل کیدلای شی چی ژوندلومړې ځل دمځکی په کره کښی خصوصاً په او بو کی پیدا سوی دی پروچه او یاد کوم سپند پرغاړه نه دی پیدا سوی.

ځکه دا او بو محیط بر سیره پر دی چی دا بتدا ئی ماهیانو (سیلوریں،

دژوند د پاره مناسب او مساعد محیط ثابت شوی دی د هغه یو ځا ځکی پر وتو پلا زم د پاره هم یو ډیر ښه او دژوند وړ محیط ګڼل شوی دی؛ کوم چی ډیرو پوهانو دلومړی ژوند اصلی مبدا او منشا ویلی دی.

لههری خوا:

# داسی کمره چی

په یوه ثانیه کی ۵۰۰ ملیونه عکسونه اخلی

شوروی ماهرانو پدی وختو کښې د عکس اخستلو یوه داسی حساسه او فعاله کمره جوړه کړیده چی په هرې یوی ثانیی کی ۵۰۰ ملیونه عکسونه اخلی.

دغه کمره په خپل کار کی دومره چټکه او سریعه ده چی قطعاً د کمری په دوربین کی ئی فعالیت نسی لیدل کیدلای دغه کمره دری پښی لری او په دننه برخه کی یی فلم نه ایښول کیږی او فلم یی دیوه نوار په شکل ددوربین په دواړو خواو کښی تعبیه شویدی او مخصوصی محفظی لری.

ددغه فلم ګړندی والی دنړی له خورا ګړندیو جت الوتکو څخه لږ تر لږه زر کرته زیات دی ددغه راز کمرو شمیر تر اوسه پوری ډیر لږ دی ځکه چی ددغه راز (نور په ۱۸ مخ کی)




بناغلي (پژواك)

# غــزل

هم هغسې چې خندا کښې هنر نشته
په ژړا کښې هم له سره اثر نشته
که دې غاړه لکه غر ونیسې هسکه
په نیلي تیغ د افق کښې جوهر نشته
تل دې خلك په خاورین ستورو غولیدلي
د اسمان په شین دربار کښې ګوهر نشته
د ژوندون نه به کم خوب پریشان نه وي
د دنیا نه نارا حته بستر نشته
دا چې خاوري شوم د مینې لار کښې بنه دی
خو دچا ځما په خاوري ګذر نشته
دا خبر به څوك ځما نه یار ته یوسي
چې بیلتون کښې مې له ځانه خبر نشته

زه «پژواك یم» په پېچومو کښې لوی شوی
دا چې چپ یم لته غرا و قمر نشته



ښاغلی (حبیبي)

# دغرو بازیې، ولې پروت یې
# په ځالې کې

یا د چاز ما ولور ته نظر نشته
یا مې اوس په غلبلو کې اثر نشته
د بې وزلو کور ته نه د رومې پیاوړی
پر لوېدلو د غښتلو ګذر نشته
پر غښتلو هره ورځ اختر، برات وي
د بې وزلو ښادي نشته، اختر نشته
ځان غښتلی که، که ژوندون او حیات غواړې
بېله زوره ژوندون نشته، ظفر نشته
پښتون کامه! سوړ جهان له تا نه تود ؤ
اوس دې ولې په نغري کې شرر نشته ؟
غوږ دې کښېږده ماته یو ګړی ځلمیه !
که پښتون وې نو وتا ته خطر نشته
ته ژوندی یې په پښتو او پښتنوا له
بې له دې دې له ژوندونه ثمر اشته
دغرو بازیې، ولې پروت یې په ځاله کې
ستا پرواز او تپش نشته، وزر نشته
د همت وزر که خلاص کې، فضا ستا ده
یو وار والوزه، په دې دې باور نشته
ستا پښتون نیکه د توري په زور خان ؤ
اوس رڼا د توري ستا پر ټبر نشته
ستا په نور روښان مشرق او هم مغرب ؤ
اوس دې وږغ پر باختر نشته، خاور نشته
دپر دنیا ستا د همت قیصې خپرې دي
منځنۍ ایشیا کې ته یې بل بر نشته
ذبري ګوهر که غواړې راسه واوروه
له «خوشحاله» چې وینا کې ضرر نشته

«که غوټې پسې وهې په لاس به درسي»
«چاوې داچې په دریاب کې ګوهر نشته»

ښاغلی (الفت)

# فرهادی عزم له عشقه پیدا کیږی

عاشقانو سره ویره د سر نشته
هسی نه چی د عشق لار کی خطر نشته
توری زلفی دی ماران او منګری دی
پاڼو ګر سره یی دم او منتر نشته
بی پروائی ژوندی زړونه له کوګله
عقیده دی په قیامت او محشر نشته
تك سپین مخ دی ده کعبه د عاشقانو
دلته فرق د مسلمان او کافر نشته
زړه می تا نه قربان کړی سر و مال هم
هیڅ پروا می په خپل عقل و هنر نشته
په ژړا باندې ستا زړه کله نرمیږی
د مظلوم آه و فریاد کښی اثر نشته
عشق او مینی د بورا مینه ګلزار کړه
هیڅ کیمیا له عشق او مینی بهتر نشته
زړه می یوك له محبته لوی دریاب دی
خو طوفان کښی یی څه زیار او ضرر نشته
جاز به د عشق ده روح د کاینا تو
بی له عشقه هیڅ غرض او جوهر نشته
فرهادی عزم له عشقه پیدا کیږی
د عاشق په مخ کی هیڅ کله غر نشته
بی له مینی څوك مطلب ته نه رسیږی
سعادت ته بله لار د بشر نشته
کارغان نه رسی مقام ته د بلبلو
ورسره د عشق او مینی وزر نشته
زړه په مینه محبت باندی ژوندی وی
په مړ زړه کښی د عشق نور او شرر نشته
عشق او مینه محبت هسی مضمون دی
چی ئی بیله ژوندی زړه بل دفتر نشته

ښاغلی «خادم»

# خوشی ،خوشی

بی تهدابه چې تعمیر کا، کړی، کارونه خوشی خوشی
دورانی دپاره کاږی زحمتونه خـوشـې خوشـی

په څو ورځې ژوندانه کښې هوښیار زیرمه د محشر کا
غافل تیر په هغه دغه ، کړی عمرونه خوشی خوشی

بلبل جوړه کړه جا له ښه ماموته د ګل خواکې
تیر په سم او کوږ کړه چټې، موسمونه خوشی خوشی

لاله وغړوی سترګی له عبرته په زړه داغ شی
رڼې سترګې سوسن ګوری، ساعتونه خوشی خوشي

جوړ شی لعل له هغه اوښکوچې تویږي وکوګل ته
چپ شه ای آبشاره مکړه، داشورونه خوشی خوشی

چې ژوندون لري مړ کیږی ښه هغه چې باشرف مری
که سپی زرکاله وپایې وی کا لونه خوشي خوشی

لوړ همت په دام د طمعی کښې څوک کله شی نیولی
دهمای دپاره مه ږده دا دامونه خوشـی خـوشی

د مرض علاج په کار دی څه لامنځ کښې له شدته
پس له مرګه څه په کاردی ماتمونه خوشی خوشی

زه د عشق په پیاله مست یم محتاج نه یم د شرابو
ساقی! مه ړکوه ماله دا جامونه خوشـی خوشی

چا حاصله خپل مرام کړ، په قوت د خپلو متو
څوک دی ناست، کوی په زړه کې ارمانونه خوشی خوشی

په شهباز سره د شعر به تازه د ژوند نغمه کړو
دارباب د زړه غلګیږی ډیر عمرونه خوشی خو شي

دفرهاد تیشه په لاس کړه که شیرینه معنی غواړی
پراته کله وی ایروکښې، سره لعلو نه خوشی خوشی

چې روان آر او بو نه وی، او ژور هم له دریابه
نه پوهیږم څله وابی دا شعرونه خوشی خو شی

د انقصان د شعر ندی له خپله ذوقه سراغ وکړه
په «خادم» باندی مه وایه تهمتونه خوشی خوشی



ښاغلی فضل ربی «فرید»

# دمینی اور

چې دمینې په لمبو زه ګرفتار شوم
روح پریشانه زړه می سوی پرانګار شوم
عاشقی می خز انه بلـله پـښـه
چې عاشق شوم ترهغه لا پسې خوار شوم
مینتوب که لیونتوب دی نه پوهیږم ؟
لازمي یم بیاله ژونده ه‌ویزار شوم
ماد مینې رنځ ونه لیده په ستر ګو
روغ رمټ یم پټ په زړه ګوره بیمار شوم
په تقصیر باندی پوه نه شومه چې څنګه؟
دهر کس اوناکس دستر ګو خار شوم
دځوانۍ هوس خندا را څیني پاتې
درپه‌در ګرځم زبون په‌زړه افګار شوم
نه مې یارشته نه مې ورورنه بل ملګری
دهرچا نه ګوښه تللی بر کنار شوم

(د ۱۴ مخ پاته برخه)

کمرو څخه په‌ضروری‌وختونو کې کار اخستل کیږی .
دغې کمری‌دیوی ثانیې عکس اخستل شپږمیاشتې کار غواړی څوچه‌اخستل‌شوی‌عکسونه ترکتنې‌لاندی ونیول‌شي‌په دغه منظور کوم‌وخت‌چې‌غواړی‌ددغې کمرې دعکسوننداره وکړی‌اوله عکسو څخه یې په زړه پوری استفاده وشی نو ددغه کار دپاره پخوا تر پخوا یونیم ملیون ثانیې وخت ته‌اکل کیږي .

# ښکلا

کومه جذبه او خوشحالي چې د ښکلا او ښایست په لیدلو سره پیدا کیږي د انسان د عمر په اوږدولو کې مرسته کوي، ځکه چې د فطرت په ښکلا مین وي، هر سهار چې سپېدې راپورته شي د لمر خاتو ته ځاروي د سپوږمۍ په شپو کې ټوله شپه د سپوږمۍ د ښکلا او جمال ننداره کوي د تیاري او تروږمۍ په شپو کې دستور و په ښکلا زړه بایلي د روڼ اوصاف اسمان په لیدلو سره خوشحالیږي د سپینو او تورو وریځو د غونډیو نه خوند و نه اخلي د غرونو، د ښتو او ځنگلو په تازه گي او سمسورتیا خپل غم او خپگان ورکوي او موټي موټي غوښې اخلي.

کله چې په سپینو واورو او تورو وریځو آسمان پټ شي نو دی ور ته خاندي وهو سیږي.

«تاگور»

«له هرچا نه لیري»

رټل او رټل کیده یو هم ښه نه گڼم او له دواړو نه کرکه لرم - د چا اطاعت نشم کولی او له چا نه اطاعت هم نه غواړم.

هغه چې له ځانه نه ویریږي بل هم نه ویروي.

په نورو باندې هغه: ځوک حکومت کولی شي چې نور ویروي زه به ځنگه د غه کار ته زړه ښه کړم چې د خپل ژوند په اداره هم نه یم خوښ زه غواړم چې د ځنگله یا د سیند حیوانا تو غوندې یوه شیبه ځان هیر کړم چیرته یواځې کښېنم.

له خپلو لیري اوږدو رؤیاؤ سره مشغول شم.

خپل ځان له ډیر لیري ځایه د لته راوبولم.

له ځانه زړه وشکوم او بیا له ځانه له بل چا سره مشغولاو نلرم.

«لیلي الن»

❁ ❁ ❁

ښاغلی «ځیگر»

## چې روڼ سحر ته سترگې واړومه

زه چې دلبر ته سترگې واړومه
گویا چې لمر ته سترگې واړومه
شي رامعلوم دی حقیقت د وعدو
چې روڼ سحر ته سترگې واړومه
را سره نشته حسو صله د دیدن
چې د یار در ته سترگې واړومه
ستا د قاصد مې پری گومان راشي
چې هر بشر ته سترگې واړومه

کړمه بې واکه ستا ښو ته دعا
چې خوږ «ځیگر» ته سترگې واړومه

# دانسان د عمر د اوږدوالي راز

ډېره موده کېږي چې بشر د زړوالي او زړښت په شاوخوا کې کتنې او پلټنې کوي او د نړۍ په لويو آزموېښتونو کې يو شمېر پوهانو خپل عمر د زړوالي د علت د پيدا کولو او د هغې د مخ نيوي او د دارو کولو لپاره صرف کړی دی او د بشر د امدالو مه هميشنۍ هڅه داده نښې ته نژدې او د کاناډا د علمي پلټنو د موسسې غړی هانس شلي مثبتو نتيجو ته رسيدلی دی.

دا ډاکټر عقيده لري چې زوړوالی د بدن د سلولو د زړښت په اثر منځ ته راځي نو که چېرې وکړای شو چې سلول په داسې محيط کې چې ميکروب و نه لري وساتو له منځه نه ځي او په طبيعي ډول سره به خپل ژوند ته دوام ورکړي نوموړي پوهاند دې نظريې د اثبات لپاره ډېر شمېر موږکانو او نورو حيواناتو سلولونه د حياطي شرايطو تر اصولو لاندې واز مويل څرګنده يې کړه چې د تل لپاره يې خپل ژوند ته دوام ورکړی دی او کېدای شي چې د نوموړي فرضيې په مطابق د سلولو د ودې او د ژوندانه محيط اصلاح کړای شو د عمر د اوږدوالي په راز پوهيدلی يو او ممکنه ده چې د بشر عمر له ۵۰ نه تر ۲۰۰ کلو پورې هم ور سېږي.

د زړوالي ضد واکسين :-

د علمي آزموينو په لړ کې غالباً يوه پوښتنه منځ ته راځي او هغه داده چه که چېرې د پلټنو لو تحقيقاتو بودجه زياته شي ايا د ډاډ وړ ده.

حقيقتاً يوې مثبتې نتيجې ته د رسيدلو لپاره پوهان اړ دي چې ډېر شمېر آزموينو څخه کار واخلي کله دې آزموينو يو زيات شمېر منفي نتيجې ور کوي

اما د هغوی سر ته رسول اجباري دي نو لدې کبله زياتې بودجې درلودل سره ده دې چې د برياليتوب لاره پاکه او هواره وي ولي دا ادعا نشو کولای چې هغه روغوي ځکه چې يوه کار ته د رسيدلو لپاره وخت ضروري او حتمي دی د مثال په توګه.

د ډاکتر ي يوه ازموينه وروسته له هغې چې کشف شي نه شو کولای چې سمدستي يې پر انسان تجربه او وي آزمويو بلکه دا لازمه ده چې د بيلو بيلو ځارويو څخه يې شروع او همدارنګه د حيواناتو د عکس العمل د غور لپاره هم يو وخت لازمي دی او پرلپسې يې د مثبتو نتيجو د لاس ته راوستلو نه کولای شو چې په پوره پاملرنه يې پر انسان باندې وآزمويو.

د ژوند او مرګ رشته:

په بدن کې يو لړ سلولونه شته دي چې د هغوی فساد د مرګ مبداء ده نو کله چې د هغوی د تغذيې په لړ کې اختلال او خرابي پيدا شي زوړوالی شروع شي او که د اختلال او خرابي تاخير شي او يا يې خراب شوي قسمتونه ترميم کړو او د هغوی پر ځای سالم او جوړ غړي ځای کړو نو زوړوالی موځای پرځای درولی دی د ژوندانه د دې رشتې کشف لومړنی ګام او د هغې په جوړښت پسې هيڅ د برياليتوب وروستی ګام ګڼل کېږي.

دا دې د دې رشتې شته والي څرګند او د هغې زياد شمېر متشکله مواد هم ښکاره او کشف شوي دي نو لدې کبله ډاډه يو چې په کمه موده کې به د طبيعت دا راز هم د پردې نه راڅرګند شي.

# د نړۍ له هیوادونو سره اشنا سی

## د مونیخ د ښار معجزه

د ۱۹۶۳ کال د مسافرینو او توریستانو بیلانس یو وار بیا تصدیق وکړ چې د جرمنی د لویو ښارونو په منځ کې

مونیخ مخکښی او نسبت نورو ښارونو ته زیات لیدونکی لري . تیر کال د فدرالی المان د جمهوریت احصائیوی اداری راپورټ ورکړ چې ۶۸ ر ۹ ملیون توریستانو لدغه ښار څخه لیدنه وکړه او ددوی په منځ کې (۵۲۴،۹۴۶) تنه خارجیان وه .

هر کله چې نور ښارونه خوشحاله وو چې ددوی د لیدونکو په شمیر کښی په سلو کښی دری یا څلور تنه زیاتوالی راغلی ؤ د مونیخ د توریستانو بیلانس په سلو کی (۱۲ ر ۱۲) پـــه زیاتوالی وښود او حتی د خارجیانو شمیر نژدی ۴ر۱۳ ته په سلو کی ورسید

هامبورګ لـه ۴۳ر۱ ملیونو لیدونکو سره دوهم ځای نیولی دی اما دهغه لیدونکو په شمیر کی یوازی په سلو کښی ۱،۳ زیاتوالی راغلی دی فرانکفورت (۹۵۴۰۰۰ تنه لیدونکی او کولون ۷۱۸۰۰۰ تنه لیدونکی د خپلو حالاتو څخه چې ډیر کم زیاتوالی لري او په سلو کی (۰،۶) او (۱،۳) دی سا تنه کوی او حتی د هغو خارجیانو شمیر چې دغه دوه ښارونه ئې لیدلی دی ډیر کم دی .

په یوه لیدنه کی چې د کولون په ښار کښې وشوه خبریالانو وویل چې ( د مونیخ نتیجې معجزی او معماوی دی ).

غربی برلین په ۱۹۶۳ کال کی د (۵۱۴،۷۸۷) تنو مسافرینو له خوا ولیدل شو چې ددوی په منځ کی (۱۳۶،۹۴۰) تنه خارجیان وو .

د جرمنی د ۴۹ لویو ښارونو په مینځ کښی د جرمنی زوړ پایتخت له پورتنیو ښارونو څخه وروسته او پس له دویزلدورف (۵۵۵،۵۴۲ تنه لیدونکی) او

شتټ ګارټ (۵۵۲۴۴۵ تنه لیدونکی اما له هارونو څخه مخکی چې (۴۲۴،۵۲۷ تنه لیدونکی) لري صف بندی شوی دي .

له دغه کبله برلین په دغو لستونو کښی اوومه درجه نیولی ده .

څرنګه چې لست کاملا مختلف دی نو که مونږ د تیرو سویو شپو شمیر ته چې د توریستانو او نورو لیدونکو له خوا اتر اوسه پوری په دغو ښارونو کښی سوی دی وګورو دلته هم د

مونیخ د لیدونکو شمیر ۳،۴۴ ملیونو ته رسیږی او له دغه حیثه لمړی درجه نیسی او وروسته له مونیخ نه هامبورګ (۳،۷ ملیونه )

او فرانکفورت (۱،۷۴ ملیونه) لیدونکی لری او پس له دغو څخه څلورمه درجه برلین نیولی ده چې (۱،۵۱) ملیون ته ئی د لیدونکو شمیر رسیږی

مسافرینو او لیدونکو پـه برلین کښی معمولا ډیرې ورځې نسبت نورو ښارونو ته تیری کړی دی .

د لیدونکو او توریستانو یو ډیر ستر شمیر د (باواریا) پواسطه سره چې ۷،۸ ملیونه

ثبت سوی دی او وروسته له دغو نه د (بدن ویرتم بورګ) (۶،۰۰) او (نارت زاین ویست پالیا «۵،۴۵» ادهسن ۷۸ ،۳) میلونو لیدونکو شمیر ثبت سوی دی .

# پانامه و پیژنئ

ښاغلی (غرزی)

پانامه یو جمهوری هیواد دی چی د مځکی ساحه ئی ۷۴۴۷ کیلو متره او د۹۶۴ کال په پای کی ئی نفوس ۱،۱ ملیون و. عمده واردات ئی غذائی مواد دی چی د ټولو واردا تو په سل کی ۶۰ تشکیلوی دوریجو کرهڼه یکښی رواج ده خود صادراتو مهم قلم ئی موز دی.

پانامه د مرکزی امریکا په جنوب کی پرته ده او مرکز ئی د پانامی ښار دی.

ختیځ او جنوب ته ئی د کولمبیا هیواد، لویدیځ او شمال ته ئی د کوستاریکا هیواد پروت دی.

د پانامی کانال ارام بحر او قیانوس اتلس په مرکزی امریکا کی سره منښلوی او دامریکا د بحری د پاره یو حیاتی اهمیت لری.

ځکه که دا کانال نه وی بیړیانی مجبوره دی چی پر جنوبی امریکا باندی راوګرځی څو په بحر اتلس کی بندرو ته ځان ورسوی.

د پانامی اوسید و نکی په سل کی ۶۶ میستایزان ۱۴ تور پوستی

۱۰ سپین پوستی او لس هم محلی هندیان دی.

د پانامی د کانال منطقه له ۱۹۰۳ کال څخه تر نا معلومی مودی پوری له امریکا څخه په اجاره ده او امریکا په دی سیمه

کی خپل حقوق او اداری روش چلوی. د کاله ئی د اجاری ټول مبلغ ۱،۹ ملیون ډالره ته رسیږی او څرنګه چی د کانال مستقیمه اداره د اتازونی په لاس کی ده نو د کاله ئی ۷۰ ملیون ډالره د سا نتی د لګښت له درکه پر غاړه دی.

په ۱۹۶۴ کال کی جمهور رئیس رو بر توچیاری د امریکی له جمهور رئیس څخه د کانال د استر داغوښتنه وکړه او ضمناً ئی د اتازونی د حقوقو تضمین هم وکړ خو خبره د غسی پا ته وه څو اوس سره و ښوریدل.

پانامه چه د۱۹۵۴ کال د نومبر پر ۱۲ د ملګرو ملتو غړی سوی ده د امریکائی هیوادو د موسسی غړی هم ده پر دی موضوع د امریکائی هیوادو د موسسی له خوا یو هیئت د کتنی د پاره ورغلی و و

## داسې یوه

دستګاه نوی جوړه سوی ده چی په مریخ کښی د ژوند کولو امکانات معلوموولای سی

په دی وختو کښی امریکایی پوهانو د «ګولیور» په نوم یوه ذره بینی ډیره دقیقه دستګاه جوړه کړی ده دغه د ستګاه د پوهانو هغی ستری غوښتنی ته ورسیږ اندی شوه چی په ورشو کښی جوړه سوی وه.

د دستګاه وزن له یو کیلو ګرام څخه لږدی او دیوه فضائی بیړی په وسیله سره به د مریح په کری کی په کار واچول شی.

د دغی دستګاه یوی بلی نمونی چی په کالیفورنیا کښی جوړه شوی وه په زړه پوری نتیجه ور کړه.

د دغی دستګاه د کار اصول داسی دی چی د ذره بینی موجودات یوی کروندی ته ورننوزی او د شیمائی فعل او انفعالاتو په اثر د رادیو ناکیو کر ینهك ګاز تولیدوی او یوه بله آله د دغه ګاز وجود ټاکی ور وسته له هغه الکترونیکی دستګاه دستا یلی شوی دستګاه د کار نتیجه مځکی ته مخابره کوی.

# د خندا !!!

# پلوشې

د محمد ناصر [ نصرت ]
ژباړه او ټولونه

## خواجه

څو نجونو د کورنۍ سبق په کتابو کې د(خواجه) لغت لیدلی او یو وخت ئې له معلم څخه پوښتنه وکړه چې خواجه یعنې څه ؟

معلم ئې ورته وویل :

خواجه هغه چا ته ویل کیږي چې نه نروي نه ښځه.

شاګرد ئې ورته وویل . دا څرنګه کیدلای شي چې یو څوک دی نه نروي نه ښځه ؟

آخر معلم ورته وویل : مقصد دادی چې نه بد شکله وي نه ښکلي.

له شاګردانو څخه یوې نجلۍ چې دغه لغت اوریدلی او په حافظه کې ئې ناست و . یوه ورځ څو کسه د دغې نجلۍ د مشرې خور د غوښتلو د پاره کور ته ورغلي ، او یو نفر له همدغې نجلۍ یعنې له کشرې خور څخه پوښتنه وکړه :

چې آیا ستا مشره خور ښکلې ده که بد رنګه؟

کشرې خور جواب ورکړ چې نه یم خبره . آخر خلګو په ټینګه ورته وویل چې ښه وو ایه څه شی ده ؟

نجلۍ په دغه بلا جواب ورکړ چې (خواجه) ده .

✡ ✡

## د خره پالانه

یوه ورځ ملا نصرالدین په داسې حال کې چې دولی پرغاړه ئې او دس تازه کاوه خپله چپنه ئې کښېښوله. د خره پر پالانه ئې کښېښووله په دې وخت کې یو لاروي غله چپنه اخیستې یو ئې وړه . کله چې ملا له اودسه خلاص شو وئې

لیدل چې چپنه نشته ډیر عصبي شوی د خره پالانه ئې رااخیستې ، او چې پر خپلو اوږو ئې کښېښوله نو خره ته ئې وویل :

هر کله چې دې زما چپنه را کړه ستا پالانه به درکړم .

✡ ✡

## شکر چې لس بجې نه وې

یو ملګری له بل ملګري څخه چې سر ئې تړلی و پوښتنه وکړه چې دا سر دې ځله تړلی دی؟ خوږمن ملګری په جواب کې ورته وویل چې:

برایی می له یو بو کسلر څخه د بجو پو ښتنه وکړه هغه دوه کلک سوکه ووهلم. چې یعنی دوی بجې دی .

ملګری ئې ورته وویل : چې ته نو تا څه په وکړه ؟

خو زه من .... هیڅ: فقط خدای تعالی ته می شکر ویوست چې لس بجې نه وې .



## حاضر جوابی

یو کلیوال چې تازه ښار ته راشیوه شوی ؤ دیو صراف مغازی ته ورختلی، او چې هر پلو ته ئې کتل بې دقیمتی پیسو او سیکو څخه ئې بل شی نه لیدی ، وروسته ئې په ډیر تعجب د مغازې خاوند ته مخ ور گرزولی ، ورته وئې ویل چې:

دلته څه شی خرڅوی؟ .

مغازه لرونکی چې پوه شو دایو اطرافی سړی دی نو ورته وئې ویل چې :

«خره خرڅوو» !

کلیوال ژر په ژړه ورته وویل چې:

ښه ! لطفاً وفرمایاست «یه مو» څوده ؟.



## عجب خیرات

وائی چې ملا نصر الدین له دو تنو دنیا دارانو سره حج ته تللی ؤ. دحج تر مراسمو وروسته په آخره ورځ سها و چې ملا او دوه دنیا داران سره ناست وه نو یوه شته من وویل ما ددی مبارک حج په صدقه کی خپل زنگی نامی مریی آزاد کړ .

دوهم شته من وویل چې ددې مبارکی وظیفی دانجام په صدقه کی زما زینت نومی مینځه آزاده ده .

ملا فکر وکړ چې نه مریی لرم نه مینځه. نو ئې سمدستی وویل چې زه خو بل څه نه لرم نو پر ما خپله دهلکو مور طلاقه ده .



## نا کامه حیله

یو بی لاری سړی چې زیاتره به دشپې په عیش او عشرت اخته ؤ، ډیر ناوخته کور ته ئې چې له همدی امله به هروخت دښځی ترعتاب لاندی ؤ یوه شپه چې خورا ناوخته کور ته ورسید د سرای په دروازه کی ئې بوټونه کښلی کرار، کرار خونی ته داخل شو او چې غلی غلی ئې دوړوکی زوی وزانکو ته ځان ورساوه ، دهغه په زانکو لو او للو، للو ویللو ئې شروع وکړه .

په دې ترڅ کی ئې دښځې ورته پام شوی او پوښتنه ئې وکړه خیر دی؟

سړی ئې په خوراخیتم ورته وویل :
خاوری دی دداسی مور پر سر سی، یو ساعت کیږی چې هلک دزړه له درده څخه په یوه ناره او ته دمرګ په خوب بیده ئې !

دادی زه مجبور شوم ځالو نه ور کوم چې آرام سی .

ښځې ئې پر ږغ کړه ، څه څه ور کسه ساده سړیه! هلک زما په غیږ کی لکه وری بیده دی نه په زانکو کی ...



ښاغلی «لایق»

# سرچې جنون د آزادۍ نلري

ناهینده زړه مې انتظار باسي
ماغزه مې جوړ د خمار باسي
ستړې ستومانه آزرده مړوند مې
جفا درزما او د ښکار باسي
زړه چې دردمند شي خو ژاړي به کوي
سیلاب چې وخوزي خو لار باسي
د رقیبانو بې پایې ظلمونه
موږ مرحلې ته د قیمار باسي
ساقي راواړوه کاسې د میو
سترګې مې طمعه د دیدار باسي

ای له عالمه آزرده پښتونه
ای ویرځپلی غمزده پښتونه

سترګې لمبې وهي چې تا ته ګورم
ای غولېدلی ای ساده پښتونه
د ژوندانه له سیره پاته شولی
په درانده خوب کې بیهوده پښتونه
کله به پاڅېږې مزل به کوې
ای د مرګي په خوب ویده پښتونه
په ژوندو کښې به حیات څه وي
د اسیر قوم به صفات څه وي
سرچې جنون د آزادۍ نه لري
د داسې عقل به نجات څه وي
که کام بې عقله بې شعوره وي نو
فرق به د زهرا و نبات څه وي
په غلامۍ کښې به پښتون څه کوي
د دې پښتون به ثمرات څه وي
آیا پوهېږې د پښتون بچیه
چې په پرده کښې به نبات څه وي

( پاته ئې په ۲۶ مخ کې)

# هندیا د عجایباتو مځکه

هند وستان یو پراخ هیواد دی چی دشمال له خوا د همالیا له واورو ډکو غرونو څخه بیا د جنوب خواته د تود سمندر ترڅنګه پوري پروت دی یوی خواته ئی دسرو ریګو ډکی صحراوی او بل لورته ئی دګڼو ونو پوښل شوی ځنګلونه واقع دی ددی ټول هیواد پراختیا (۱۳۶۹۹۴۰) کیلو متر و ته رسیږی او پر دغه پراختیا د احصائیی له مخی (۳۹۴) ملیونه خلک ژوند کوې او د انفوس په نړې کی دولسی چین تر هیواد وروسته غیر له هند څخه بل هیواد نه لري .

هندوستان دعجائباتو مځکه ده پر دی مځکه په سلهاو مختلف ولسونه راټول شوی او د مختلفو عقایدو او ادیانو پیروان ژوند کوی دا خلګ مختلف رسومات عادات او کالی لري یو لویدیځ ګرزیدونکی وائی هغه وخت چی یو خارجی سړی د هندوستان په خاوره کښی داخلیږې هلته دعجائبو شیانو سره مخامخ کیږی ، یعنی د بشریت له ابتدائی ژوند څخه نیولی بیا دننني مدنیت تر اخرینی مرحلی پوري دهري دوري نمونی لیدلای شی او همدا وجه ده چی په لویدیځه نړې کښی هر هغه څوك چی دهند نوم اوری سم دستی ئی د هغه د لیدلو ارزو راوینیږی .

مؤرخین ټول پدې عقیده دی هغه وخت چی شمالی خواو دطبیعی انقلاباتو په سلسله کښی خپل تودوالی په سړوالي اوړه او دانسانانو مهاجرت دجنوب پر خوا را روان ؤ، ددی هجرت په لړ کښی یوه لویه ډله دآریایانو په نامه دننني افغانستان شمالی برخوته راغله او دلته ئی د یو باستانی مدنیت پایی کیښوولی او له دغو خلګو څخه یوه لویه ډله دهند پراخوار شوګانو ته شیوه سوه او په هغه ځای کښی ئی دیو درانه مدنیت اساس کښیښوده دوی چی هلته ډیری ارامی او خوښی سره مخامخ سول نو ئی د خپل اجتماعی نظام اساسات په ښو پایو راپورته کړل او د اجتماعی طبقاتو دتوازن له پاره ئی ځینی قوانین وضع کړل او په هم دغه شکل سره یو زوړ کتاب چی «ویدا» نو میږی منځ ته راغلی دی البته د دی

✡

ګوره سستی مکړه چی وار کم دی
فرصت د ننګ او افتخار کم دی
تاریخ دوباره ګرزیدلای نشی
له دی ظالمه انتظار کم دی
په دی نارام او مضطرب ژوند کښی
د لاری مل او دزړه یار کم دی
په دی ګامونو رسیدلی نشی
په دغه تنګ کښی ابتکار کم دی
هیره می نکړی وروستنی خبره
چی وخت دمنلو او دکار کم دی

کتاب جوړېدلو یقیني وخت معلوم نه دی مګر د قیاس په اساس مورخین دا کتاب د اریایانو د افکارو ډېر ښه محصول بولي .

آردی راوروسته د هند اریایانو د ژوندانه د ښه ټیرېدلو له پاره وسایل راوایستل او کله چې زمانه تېرېده او انسانان د بدویت له خوبو څخه را وېښېدل د هند قصې د نړۍ هرې خوا ته خپرېدلې مخصوصاً هغه وخت چې په هند کې د مغولو شاهي دوره شروع شوه او د کوم مدنیت آثار چې ئې ودرول ، د لوېدیځې نړۍ نظر ئې ځانته واړاوه او په لومړي سر کې د فرارۍ هند د تسخیر له پاره اراده وکړه خود عمل په میدان کې انګلستان د هند پر نیولو کامیاب شو او له نن څخه تقریباً دوه سوه کاله د مخه د لوېدیځ امپریالیزم له خوا د بېلو بېلو استعماري پلانو په تعقیب هندداروبالي امپریالیزم په جال کښېوت پدې وختو کې هغه فجایع چې د هند پر ملت اجرا سول البته تاریخ ئې جزئیات ښه

ترا بیا نیولای سي .

مګر د هند ملت چې د زرها ؤ کلو تجربه کاره



ملت ؤ د خپل ځان د خلاص والي د پاره ئې داسي یورول بازی کړې چې د ننني نړۍ د نهضتو په تاریخ کې بې سا بقې شکل لري .

د لوېدیځ امپریالیزم سره مجادله پخوا په انفرادي شکل روانه وه خو په ۱۸۸۵ کال کې د هند ازادۍ غوښتونکو د کانګرس ګوند تاسیس کړ دی ګوند

تقریباً د ۶۰ کالو په مده کې هند وازادۍ ته ورساوه

د هند لوی رهنما مهاتما ـ ګاندی د هند ملت د ازادۍ د حاصلولو له پاره په خاصه تربیه

روان کړ د عدم تشدد په قوت په داسي حال کې چې امپریالستانو د دوی ظلمې او پېغلاني ترمرد کوو لاندې نیول د دوی اراده ئې ماته نه کړه او دا ؤ چې ۶۳ کاله

وروسته یعني په ۱۹۴۷ کال کې

ازاد هند اعلام شو د هند د تاریخ دا برخه ډېر غمجنه ده ځکه په وروستي مرحله کې د هندوستان

د هندوانو او مسلمانانو سره لوېدل چې لوېدیځ امپریالیزم د خپلو بدو مقاصدو د پاره استعمالول ، د ختیځ په تاریخ کې د یوې «ویرنې» حثیت لري .

کله چې ازاد هند منځ ته

راغی د هند زمامدارانو په ملي

قوت د هند د بیا ودانولو له پاره په عمل پیل وکړ ، د مهاتما ګاندي ډېر ور تېر ملګری جواهر لال نهرو د صدراعظم په حیث وټاکل شو او د ملي اقتصاد د تفوق

له پاره اقتصادي پلانونه تر تطبیق لاندې ونیول شول چې د هغو په نتیجه کښې یې دا دی هند مخ پر ترقي ډېر چابک ګامونه مخې ته اخلي

مخصوصاً په هند کې د کلیوالي پروګرامو په باره کښې چې هند موفق ی هغه ډېرې ستاینې وړ دی او نن د نړۍ ډېر رسید لي هیوادونه خپل په کلیو کښې د هند د پروګرامو له تطبیقي برخې څخه استفاده کوي .

د هند د حکومت طرز

جمهوري دی او ۱۶۵-ایالتو له اتحاد څخه دا جمهوریت تشکیل شوی دی چې په دې ایالاتو کې د اسې هم شته چې تر انګلستان یا ایټالیې ئې مساحت ډېر وي د اجرائیې قوه د وزیرانو په لاس کې ده او د پارلمان په مقابل کې مسئول دی پارلمان له دوؤ مجلسو راجیا سابها « سنا » او لو ګ سابها « د نمایندګانو مجلس » څخه جوړ شوی دی .




دیو شوروی پوه په عقیده:

# انسان د سپوږمۍ په کره کی

مشتیدای سی

د غه شوروی عالم وایی: چی د تصور په خلاف د سپوږمۍ کره د ځمکی د کری په څیر تود ده کیدای شی هلته دانسانانو د پاره هستوګنځی ورکړو.

د غه شوروی عالم چی (نیلا کوزیرو) نومیږی د شوروی اتحاد په یوه علمی مجله کی ئی د غه موضوع په مفصل ډول تر څیړنی لاندی نیولی ده دی پخپله په دغه مقاله کی لیکی چی ده خپل دغه معلومات د (اسپکتوګرافی) په وسیله سره لاس ته راوړی دی او پر له پسی یو کال ئی په دغه برخه کښی څیړنی او کتنی کړی دی.

دی لیکی چی د سپوږمۍ د کری له منځه څخه د ګازونو د خپریدو په اثر د سپوږمۍ د کری شا و خوا د ننی برخی تودیږی او د انسان د میشتیدو د پاره د سپوږمۍ په کری کی استوګنځی غوره کولای او تاکلای شو.

د «کوزیرو» په عقیده داسی معلومیږی چی هاید روژنی مالیکیول په زیاته اندازه د سپوږمۍ په کره کښی موجود دی چی ذهغو د موجودیت په اثر د سپوږمۍ په کره کی حرارت موجود دی.

# د لمر وړانګی

آیا وای د لمر وړانګی سره چی د لمر او ځمکی تر منځ ډیره فاصله موجوده ده خپله انرجی د لاسه نه ورکوی

رشتیا ده چی لمر زموږ څخه ډیر ملیونه کیلو متره لیری دی مګر کومی وړانګی چی له لمر څخه ځمکی ته راځی نود ځمکی د ننژدی برخی څخه غیر په نورو برخو کښی له کوم مقاومت سره نه مخامخیږی ځکه ساینس پوهان وائی چی خارجی فضا یوه داسی برخه ده چی بیخی خالی او داسی موجود ور کی نشته چی هغه د لمر د وړانګو سره تماس کی راسی او د هغو د کرارېدو او انرجی د ضیاع باعث سی ځکه نو له ځمکی څخه لږ څه لیری اتما سفیر دی چی هلته د لمر وړانګی د نورو ذراتو سره په تماس کی راځی او څه اندازه د هغو سرعت او انرجی لږوی اتما سفیر په عمومی ډول د ماوراء بنفش وړانګو مانع ګرځی او نه پریږدی چی نومړی مخربی وړانګی په زیاته اندازه د ځمکی سطحی ته ښکته شی.

که چیری اتما سفیر د ماوراء بنفش د وړانګو مانع نه ګرځیدای نو په ځمکه کی ژوندانه امکان نه درلود.

د لمر د وړانګو سره چی د لمر د کری په زړه کی کوم موانع مخامخیږی نو هغه د ومره زیات دی چی د اتما سفیر د موانعو سره مقایسه کیدای نسی.

کله چی د لمر وړانګی د لمر د مرکزی برخی څخه سطحی ته راوځی نو دوی د بلیونو بلیونو تصادمونو او تغیراتو سره مخامخیږی هغه وخت چی د لمر وړانګی له مرکز څخه سطحی ته په مغیره بڼه راوځی او ملیونو نه کلونه طی کوی د لمر وړانګی د لمر له سطحی څخه ځمکی ته په اتو دقیقو کی رسیږی او د ا په وخت په دی دلالت کوی چی نومړی وړانګی د ځمکی او لمر تر منځ له کوم تغیراتو سره نه مخامخیږی او پخپل ډول خپله انرجی ساتی.

## د کندهار د هنري...

د ۲ مخ پاته

ښې تابوګانې کښېلې وې خو له بېرې نې نسوای ښکاره کولای شو بالاخره مړ شو او هغه تابلوګانې په اغلبا له منځه تللي وي خو زموږ د ښار ښه ډېر خلک دده په هنر خبر وه، په ځوانو هنرمندانو کې مرحوم ښاغلی عبدالهادي [تپانند] لرو چې آراوسه د ښوونځي زده-کوونکي دی او د ترسیم سوې تابلوګانو څخه ئې اکثراً د کندهار په مجله اوطلوع افغان کې استفاده کیږي.

### دریم: [موسیقي]
### (آهنګ جوړول)

د کندهار پخوانی شاعران اکثراً آهنګ جوړونکي هم وه مثلا مرحوم حاجي ولي محمد [مخلص] د خپلو غزلو لپاره پخپله آهنګونه جوړول چې دده د وخت ترانې ډېر شهرت لري. پدې برسېره عبدالله شاعر ؤ چې آهنګونه ئې تر نن پورې زموږ د پېوراوسالمی موسیقي ستوري بایډ وبولو که څه هم نن زموږ ټوله غزلې د آهنګ په لحاظ د نورو ځایو د موسیقي تر اغیز لاندې راغلي دي خو د عبدالله شاعر آهنګونه بیا هم د ترنګوترونک په معنا قلو کې ژوندی دی داچې اوس څوک لرو نو زه ګمان کوم چې څوک به نه لرو او که اغلباً یو څوک موجود هم وي د هغه نقش به ډېر کم بلکې هیڅ وي.

### څلورم: [مجسمه جوړول]

مجسمه سازي دلته لکه رسامي نه یوازې یو نوی فن دی بلکې څوک بېخي ورسره اشنا نه دی پدغه نااشنائي کې موږ عبدالرحیم [ننګیالی] غوندې یو هنرمند انسان لرو چې مجسمې ئې جوړې کړې دي خو څرنګه چې دا هنر دلته تروخت پخوادي چارزښت ندی ور کړی او نن دغه مجسمه ساز او بهترین شاعر، ډېر ښه خطاط او ظریف انسان هلته لېرې د فراه پر دښتو میرزائي کوي.

بل مجسمه ساز زه پخپله په کندهار کې نه پېژنم او نه هم ګمان کوم چې موجود دی وي د ښاغلي ننګیالي د مجسمو په جمله کې د یوه کارګر مجسمه ډېر په زړه پورې ده چې د واقعیت خورا ډېرې نازکې پکښې مراعات سوې دي.

### پنځم: [تمثیلي هنر]

که د تمثیلي هنر د هنرمندانو په معرفي کې دلته د [سکندر او سنګر] نومونه واخلم ښايي چې په ادب کې اشنا خلک به مې پدې نه ملامتوي چې د صوفي عبدالحمید او میرعطامحمد شاه یا ملاعبدالرحمن او ننګیالي په اړخ کې زه د هغه چا یادونه کوم چې په کلو، کلو ئې خلک پخپل هنر خوشحاله ساتلي خو هغو په سپکه سترګه ورته کتلي دي.

دلته خبره د هنر ده، هنر په علمي لحاظ هغو ځانګوته وېشل کیږي چې پورته یادې شوې او تمثیلي هنر هم د هغو له جملې څخه دی داچې سنګر او سکندر په کندهار کې د دغه مکتب مؤسسین دي نو باید عادي خبره و نه ګڼل شي.

سکندر د خپلې ټولۍ بېسوا-دیه او بې خبرې سره د تمثیل هنر په کندهار کې ژوندی ساتلی ؤ او اکثره پارچې ئې داسې انتقادي وې چې په ظاهره باید سړی پر خندلی وای خو په باطن کې ئې لویه انتباه سړي ته ورکوله.

همداسې سنګر لېونی د دواخله داسړی د زابل څخه د کندهار او روزګان، هلمند او فراه په ولا-یاتو کې هر کلي او هر کور پېژني او هر څوک چې د «کندهاري شکور ماما» ماجرا دده په مونولوګ کې ووینې نو د هیواد د تاریخ یوه پر ماجرا پانه به ئې لوستې وي.

داوه زموږ د ښکلو هنرونو یوه خلاصه چې یا په کندهار کې موجوده وه او یا اوس هم سته خو خبره زموږ و نوي نسل ته ده چې هغوی د هنر په ساحه کې کوم قدم ایږدي او څرنګه به ئې ایږدي؟ صرف په خاتمه کې باید ووایم چې موږ هم هنر ته احتیاج یو او هغه هنر ته چې د ژوندو حکایت وکړي تر څو پدغه لار زموږ په کلتور کې ترقي راشي او د کلتور په ترقي کې نو هغه خبرې زیاتې پرتې دي چې ژوند رونق پر پیدا کوي.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(JUNE) 1968

GOVERNMENT PRESS

مؤسس: محمدولی [ زلمی ]

د امتیازخاوند: دطلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي

اداره: دشهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹

د۹ کال دریمه ګڼه

کالنۍ بیه

په کندهار کې [۳۸] افغانۍ

دهیواد په داخل کې [۳۳]

په دباندنیو هیوادو کې یوډالر

پر له پسې ګڼه ۹۳

دکندهار دولتي مطبعه